۷۸۶

سلسلۂ اولیاء سرحد

دَ ادبی ټولی صوبہ سرحد اشاعت سلسلہ کښن

ع ۳۲

# حضرت شیخ محمد شعیب رحمۃ اللہ علیہ

(تور ډهیری)

لیکونکے :- نصر اللہ خان نصر

خورہ وُنکے :-

دَ ادبی ټولی صُوبہ سرحد لوئ مرکز بزتهکال - پیښاور

(پاکستان)

دُوهم ځل ———— جنوری سنہ ۱۹۵۳ء

پته :-

دفتر ضلع ادبی ټولے اندرون کابلی دروازه بابو حیدر رود

پیښاور ښهر

قیمت : ———— دوه آنے ۲ر

سرحد پریس پشاور

# ماخذ

(۱) مِرأة الاولياء
(۲) ديوان عبد العظيم بابا
(۳) تاريخ افغانستان (سيد جمال الدين افغانى)
(۴) تاريخ صوبه سرحد
(۵) دَ پښتنو تاريخ قاضى عطاء الله
(۶) هرى سنګه نلوه
(۷) تاريخ هزاره
(۸) پنجاب ريکارډ

# حضرت شیخ محمد شعیب صاحب رحمة الله علیه

**قام:-** حضرت شیخ محمد شعیب صاحب رح په قام دُرانے وو - احمد شاه دُرانی چه قندهار کښ دَ بادشاهئ اعلان سنه ۱۷۴۷ء کښ او کړو او بادشاهی تنظیم ئے کړو نو پس دَ غزا په نیت سنه ۱۷۴۸ء کښ دَ قندهار نه دَ هندوستان په طرف خپل لښکر سره دَ سکهانو هندوانو مقابلے دَ پاره رادوان شو نو دغه لښکر کښ دَ حضرت محمد شعیب صاحب رح پلار حضرت رفیع القدر رح عرف حافظ ګل صاحب رح او نیکه حضرت اخون غازی بابا رح هم وو - احمد شاه درانی هندوستان کښ سرهند شریف پورے هندوانو سکهانو سره اوجنګیدو - دَ غزا نه پس چه خپل وطن ته واپس تلو نو سرحد (دوه) کښ دَ دوئ غزا دَ غرض دَ پاره دَ خپل لښکر ډیر پښتانه پریښوو - دغه خلقو کښ حضرت اخون غازی بابا رح او دَ دهٔ څوئ حافظ ګل صاحب رح دَ یوسفزو علاقه کښ پاتے شوو

**تورډهیری:-** حضرت حافظ ګل صاحب رح ابا سیند ته نزدے تورډهیری کلی کښ آباد (میشته) شو - حافظ ګل صاحب رح ډیر لوئ عالم متقی او پرهیزګار سړے وو - دَ غزا ډیر شوقی وو - همیشه به غزا ګانو کښ شاملیدو دَ خپل اولاد تربیت ئے په داسے ښه شان سره اوکړو چه هغوئ هم

دَ پلار په قدم قدم کيښوده. دَ ځمکنو حضرت میاں عمر صاحب سره ئې دوستي وه. کله به چه ځمکنو ته دَ خپل دوست لیدو له تلو نو حضرت محمد شعیب صاحب به هم ورسره دَ پاره ورتلو حضرت میاں عمر صاحب به چه محمد شعیب صاحب ته په سر لاس راښکاؤ نو دا به ئې اکثر وے. "دَ دے هلک نه به خدائ پاک لوئ سړے جوړ کړي" محمد شعیب صاحب چه لوئ شو، دَ پیر کامل په تلاش کښې شو.

**حافظ محمد رح** هغه زمانه کښې دَ هشتنګر عمرزو کلی دکله ډهېر، حضرت حافظ محمد رح ډیر لوئ عالم او بزرګ سړے وو. دَ قرآن شریف حافظ هم وو. حضرت محمد شعیب صاحب تور ډهېرئ نه عمرزو ته راغے. دَ حضرت حافظ محمد رح درس کښې شامل شو. حضرت حافظ محمد بونیر کښې دَ ښونېئ کلی حضرت محمد صدیق صاحب ماذون وو. محمد صدیق صاحب دَ پیښاور محمد جنید رح مرید وو. او دَ برڅکال دَ حضرت ماموں یوسفزئ دَ ماذون محمد نعیم رح هم مرید وو.

**لاس نیوه:** شه موده پس حضرت محمد شعیب صاحب تر قادریه او نقشبندیه طریقو کښې لاس نیوه اوکړه. عمرزو کښې دَ خپل پیر دَ حکم مطابق چیلې او ویستے. دَ سلوک ټول سبقونه ئې دا دپه وار سبق شان سره زده کړه. هر عمل به ئې دَ شریعت دائره کښې دننه کولو. دَ حرامو او بد وکارونو نه به ئې ځان ساتلو. هر کار به ئې دَ خدائ دَ رضا دَ پاره کولو. الله تعالیٰ پرے خپل فضل اوکړو. دَ زړه صفائی ئې پیدا شوه. روحانیت پکښې پیدا شو. مخ ئې

لکه دستوری ذلیده شروع کړه - چا به چه اولید و بیا به ئې زړه
نه کیدو چه د بل چا خوا ته اوګوری - ورکوټو به هم دا کوشش کولو
چه ورته وګوری - د بزرګئ مقام ته چه اورسید و خپل پیر ترې هم مهربانه
شو - خلیفه او **ماذون** ئې کړو - او تورډهیری ته د تلو اجازت
ئې ورکړو - حضرت محمد شعیب صاحب رح تورډهیری ته راغے -
**امر معروف** به دینی مدرسه ئې جوړه کړه - امر معروف د یوسفزو
علاقه کښې شروع کړو - د شریعت نه خلاف کارونو نه به ئې خلق
منع کول - وعظ کښې ئې ډیر زیات تاثیر وو - چا به چه ئې وعظ واورېده
نو هغه به پرضرور عمل کولو - خپلو پیر بابا نو کښې د ټولو نه لویه مرتبه
خدای پاک ده له ورکړه - ده خپل [illegible] کښې د اسلام ډیر
زیات تبلیغ اوکړو - د پیرئ مریدئ سلسله کښې چه کمال
ته اورسید و - حضرت حافظ محمد رح د دې فانی دنیا نه په
۲۶ ربیع الثانی سنه ۱۲۰۶ھ مطابق دسمبر سنه ۱۷۹۱ء کښې د
احمد شاه بادشاه ځوئ تیمور شاه بادشاهئ کښې سفر اوکړو
د بدقسمتئ نه تیمور شاه د پلار غوندې بهادر نیک سیرت سیاستدان
او هر دلعزیز بادشاه نه وو - ډیر زیات شهوت پرست وو -
ده دې سوه ښځې ئې کړې وې - د دغه ښځو ئې ۳۲ ځامن وو
د پېښاور بالا حصار قلعه کښې اوسید و سخت عیاش وو - پېښاور
کښې ترې خلیل مهمند او داؤدزی ډیر زیات خفه وو - یو ځلې
دغه قومونو سنه ۱۷۷۹ء کښې د شمکنو حضرت میاں عمر صاحب رح په

حکم تیمورشاه باندے حمله هم کړے وه - په بالا حصار قلعه ورختی وه
مړ کولوئے خولا بوره ئے نه وه داغلے تر نه بچ شو - روستو بیا په خپل
مرګ د ۲۲ کالو حکومت کولو نه پس سنه۱۷۹۳ء کښں مړ شو - دَ ده دَ
مرګ نه پس دَ تخت حاصلولو دَ پاره ځامنو ئے خپلو کښں جنګونه
شروع کړه - ټول ملک کښں بدامنی شوه - په زرګونو مسلمانان
دَ دوئ خانه جنګو کښں مړهٔ تباه وبرباد شو - همایون زمان شاه
محمود ایوب فیروز الدین اوشاه شجاع دَ خپل نیکه احمدشاه
درانی ، لوئ مضبوط اسلامی سلطنت چه پکښں دَ افغانستان
سنده بلوچستان پنجاب اوډ کشمیر ملک وو - په لګه مُوده
کښں کمزورے او ټکړے ټکړے کړو - سره ددے چه زمان شاه
محمود او شاه شجاع وغیره په افغانستان حکومتونه هم
کړی وو - لیکن په ځائے دفائدے ئے خپل وطن ته نقصان
رسولے وو - دوئ دَ خپل اقتدار حاصلولو دَ پاره دَ افغانستان
هغو بنیاد قوم پرست خلق وژلی وو - رعیت کښں اسلامی قومی
او دَ اتحاد جذبه دَ خانه جنګو په وجه نه وه پاتے شوے - دینه
علاوه غریبان شوی هم وو - سکهانو چه دَ پښتنو دَ تباهئ
نه او کټل نو دَ خپل حکومت جوړولو خیال ورته پیدا شو -
زمان شاه چه سردار رنجیت سنګهه ته لاهور بخښلے وو
دَ خود مختارئ اعلان اوکړو - پنجاب کښں د سکهانو حکومت
جوړ کړو - دَ تیمورشاه ځامن چه نااهل ثابت شول نو دَ

افغانستان خلقو ترے بغاوت اوکړو۔ دَ سردار پائنده خان
ځامنو یعنے دوست محمّد خان، عظیم خان، سلطان محمد خان
پیر محمد خان، یار محمد خان وغیره دَ افغانستان سلطنت
باندے په زور قبضه اوکړه۔ دا ملک خپلو کښې اوویشلو
دَ بد قسمتئ نه دا دونره هم خپلو کښې یو بل ته دیر زر بدبینه
شو۔ پرے کوندئ جوړے کړے۔ سکهانو تر ملتان کشمیر
اوټول پنجاب په زوراونیولو۔ دغه ملکونو کښې مسلمانان
ئے تنګے له راوستل۔ بانګ ونیلو ته به ئے نه پریښوده
دَ مونځ حلاله ئے پورے بنده کړه۔ او دغه شان نور دیر
اسلامی کارونو نه ئے منع کړی وو۔ بیکارونه به ئے
پرے کول۔ حضرت محمّد شعیب صاحب رح چه دَ تیمور شاه
او دَ سردار پاینده خان دَ ځامنو دَ لاسه دَ احمد شاه دَ
اسلامی سلطنت تباهی اولیده نو میدان ته راووتو
یوسفزو کښې هغه کسانو سره مل شو۔ څوک چه دَ سکهانو
دشمنان وو۔

جهاد :- دَ جهاد تبلیغ ئے شروع کړو۔ په زرګونو خلق
ئے جهاد دَ پاره تیار کړل۔ سردار عظیم خان دَ داسے موقعے
په انتظار کښې وو۔ ځکه چه سکهانو سردار عظیم خان
نه سنه 1819ء کښې کشمیر په زور اخستے وو۔ سکهانو باندِ
دَ حملے دَ پاره تیارے کابل کښې شروع کړو۔ سکهانو چه

د یوسفزو اسلامي جذبې ته اوکتل. څه فوځ ئې د اټک
قلعه کښې واچولو. او څه ئې د اباسینډ په غاړه د یوسفزو
علاقې ته مخامخ ډېره کړو. دغه لښکر درې کاله د اباسین
په غاړه پروت وو. د حضرت محمد شعیب صاحب او دغه رنګ
د نورو کسانو د پراپیګنډ ورمشمشي ) په وجه د صوبه سرحد
د سمې او د غزو نو د خلقو سکهانو ته نفرت پیدا شوې وو او
دغه مسلمانانو سره ئې ډېره مذهبي همدردي پیدا
شوې وه. کوم چه د سکهانو ماتحت وو. سردار عظیم خان
له ښه موقعه په ګوتو ورغله.

**د غزا اعلان** :- د غزا اعلان ئې اوکړو. د کابل نه ئې
سکهانو پسې لښکر اوکړو. چه پېښور ته را اورسېدو. د
خلیلو مهمندو غازیان هم ورسره شامل شول. یوسفزي
چه د سردار عظیم خان د راتګ نه خبر شو. د غزا د پاره ئې
لښکر تیار کړو. مهاراجه رنجیت سنګه چه د سردار
عظیم خان د لښکر نه خبر شو. د ده د ورور یار محمد خان ئې
د خان سره پټه ملګرې کړو. مقابلې د پاره ئې د سکهانو
لښکر نوښهرې ته واستولو. د یوسفزو لښکر نوښهرې ته
را اورسېدو. حضرت محمد شعیب صاحب رح هم ورسره وو
د نوښهرې او پیر سباق منځ کښې د لنډي سیند په کسه
غاړه ئې مورچې جوړې کړې. د سردار عظیم خان لښکر

هم نوښهرې ته راورسیدو. دے لښکر سره دَ یوسفزو
لښکر ملګرے شو. په ۱۴ مارچ سنه ۱۸۲۳ء مطابق سنه ۱۲۳۸ھ
دَ سکهانو او مسلمانانو لښکر جنګ شروع کړو.

جنګ:- په دغه ورځ غازیانو سکهانو سره لاس په لاس
جنګ اوکړو. غازیانو کښې چه دَ چا تورے به ماتے شوے
او توړې ټوټې به ورسره نه وو نو په تش لاس به سکهه ته
ترغاړه وتو. په چکونو به ئې خواړه. بے شماره سکهان
ئې مړه او ژوبل کړل. دَ سکهانو وارخطا شو. تښتې ته
تیار شو. مهاراجه رنجیت سنګه چه دَ خپل لښکر دَ
حقیقت نه خبر شو نو په خپله میدان ته جنګړه په لاس
تازه دَم لښکر سره جنګ له راغے. پهولا سنګه سردار
دَ غازیانو مخے ته ورغے. جنګ ئې شروع کړو. ښه په
خوامردئ سره اوجنګیدو خو دَ غازیانو دَ لاسه ئې پوره
رانغلے وه. جنګ کښې مړ شو. سکهانو دَ پهولا سنګه په
مرګ ډیر زیات خفګان اوکړو. مهاراجه رنجیت سنګه
چه پوئ شو چه په زور فتح نه شم مونده نو یار محمد خان
سره ئې راز باز شروع کړو. دَ یوسفزو په لښکر ئې حمله
اوکړه. په دغه ورځ دَ یوسفزو دَ لښکر دَ امداد دَ پاره
دَ سردار عظیم خان اور یار محمد خان لښکر راغے. دَ
یوسفزو لښکر ښه په بهادرئ سره جنګ اوکړو. هیر

غازیان پکښې شهیدان او ژوبل شو. د یوسفزو لښکر چه د سردار عظیم خان او یار محمد خان بې ننګئ نه او کتل نو ډیر زیات خفه شو. جنګ ئې په ځائے پریښو. خپل مړی او زخمیان ئې خپلو کلو ته یوړه. دغه جنګ کښې حضرت محمّد شعیب صاحب رح هم زخمی شوے وو. چه خپلې علاقې ته اورسیده شهید شو. تور ډهیری کښې ئې خخ کړو. د سکهانو لښکر عارضی طور سره په پېښور قبضه اوکړه. سردار عظیم خان کابل ته اوتښتیدو. د برتهکال صوفی شاعر حضرت عبدالعظیم بابا د پایٔنده خان ځامنو پورے یو غزل هغه وخت سره جوړ کړے وو. لاندینی درے شعرونه د هغه غزل دی:-

خدائے میشته کړه پېښاور کښې سِکهان ځکه
بارکزو نه چه اِنصاف عدالت لاړ
دا پرانزے پایٔنده خان کړو خدائے بے یُمنه
که له واړو بارکزو شرافت لاړ
د غزاتو ئې پرانستے له ملانه
په یو وارے مومنانو نه هِمت لاړ

د نوښهره د غزا حال مونږ ی شاعر هغه زمانه کښې چاربیته کښې لیکلے دو. مونږ هغه چاربیته دلته لیکو هغه داده:-

# چاربیته

قاصد دَ بادشاه راغې یوسفزي اولس زبیده
په نیت دَ عزا لاړشه په نوښجر اورځیده

قاصد دَ بادشاه راغې رالیږلے عظیم خان
دَ اوله ئې جرګه کړل مُلایان اوملکان
دارو کولئې په مادي درکوم به خرڅ تاوان
الفاظ ئې خوږ شکروو په هرچا اولګیده

الفاظ ئې خوږ شکروو پرے راضي یوسفزي شوه
راتلل به ځای ترځایه نه ئې خوب نه ئې دمه شوه
خیل کور به هرچا اورشو پېښه داسے علاه شوه
توکل دُعائې اوکړه سیلاب ونه بهیده

توکل دُعائې وکړه اکوزي وو په ذړګونه
راتلل ئې مشران دَ سیند په غاړه لکه غرونه
دَ زغروئې خلکے وے دوشالے ئې په سرونه
دَ حُسن په صفت ئې بادشاهان هوسیده

سائل به میندو خوینډو الله ورو ستل قضا له
اجل ئې په پیروو دلته هسے لو تیدَه

اجل ئې په پیروو اشیزو اوکړله توره
رحمت په سلا ر زوشه مُدعائې کړه حضور ه
مشران دي ګدیزي سروونه اړئ له تربوره

خاوندہ خد یخیل لہ پیښے کلہ تښتیدہ

ډ پیښے تہ چاذاوزی تورزی دی اکدران
مدام ئے صفت جنگ وی ڈاو ښکلو پہ میدان
ډ اللہ نوم چہ بیٔ واخست نو بہ مات شو نوسیکھان

ډ لښو ډ کمتہ مئے ریخیت او وبیریدہ

ډ نخښو پہ کمتہ کښں شہید شو یئے یو خان
ډ قام پہ مخکښں مړہ شو فیض طلب او لطاف خان
شیرداد محب اللہ دو نرہ پڑے میراث شو سردخان

اسمٰعیل زی ډلوئے مولا سرہ تعلونہ نوئیدہ

اسمٰعیل زی ډلوئ مولا پہ مخکښں مړہ شو امانت
معصم او عادل شاہ دِ اللہ کاندی پہ جنت
ډاو ښکلو جنگ ئے اوکړو پہ میدان کښں بہ ساعت

پہ مرګ ئے پہ آسمان کښں ملائک اوژ ریدہ

پہ زمکہ ژاړی چونہ ملایک دی پہ آسمان
یو چرګ پہ نارہ پریوت اخوند خیل شو بندیوان
ډ مرکہ پورے پلار ډ حضرت دین کوی ارمان

میراث ئے پالنګونہ پہ میدان خاورے کیدہ

میراث ئے پالنګونہ پہ میدان شو لو یوازے
ژاړی خوینے میندے کلیے ئے کړے آغازے
ډ خاورونہ شوے لاندِ ھغہ ښے پګړی دارے

په صفت ئې موږنه لکه فولاد او ليشيده

صفت د يوسفزو قوم چه قتل ئې کړو ځان
په محکمين تمام شو پير ملا او صاحبزادګان
په دوزخ کښ به کفار وي په جنت کښ مومنان
هر بيت د موتيو لکه مرجان بيعه کيده

**دونړه:-** د حضرت محمد شعيب رح صاحب درې دونړه نور هم وو. محمد اسلم ئې ميړنې وور وو. محمد زبير او عزيز ئې سکه رونړه وو. د دوي مور د صوابي د اخون صاحب رح لور وه.

**ځامن:-** د حضرت شيخ محمد شعيب صاحب رح دوه ځامن وو. د يو نوم سعد الدين او د بل نوم صدرالدين د دې دوه ځامنو اولاد ئې هشتنګر، سوات او يوسفزو کښ دي. په صاحبزادګانو مشهور دي

---

نوټ:-

د نو بنهر د غزا چار بيته ما د مرحوم قاضي عطاء الله صاحب (سابق وزير تعليم صوبه سرحد) نه ليکلې ده. ۱۹۳۹ء کښ قاضي صاحب تهکال ته راغلې وو. ما ته ئې وې چه د نو بنهر د غزا چار بيته ما د يوسفزو د يو بوډها سړي نه ليکلې ده. د دغه سړي عمر د سلو کالو نه اوړيدلې وو ليکن همت او ياد داشت ئې ډير ښه وو.

(نصر الله خان نصر)

## لاندې شجره دَ دغه صاحبزادګانو ده




دا شجره مکمله نه ده ۔ دَ کومو صاحبزادګانو چه ماته علم نه وو دَ هغو نومونه م نه دی لیکلی ۔

دَ حضرت محمد شعیب صاحب دَ ورور محمد زبیر دَ مشرځوی قاضی فضل الله نمسی نور دهیری کښې آباد دی دَ محمد شعیب صاحب دَ زیارت خدمت کوی ۔ او دغه جماعت پرے آباد دے کوم کښې چه به حضرت شیخ محمد شعیب صاحب عبادت کولو ۔

نومبر ۱۹۵۲ کښې چه زهٔ تور ډهیری ته لاړم ۔ نو دَ قاضی
فضل الله صاحب نمسو کښې عبد القدوس صاحبزاده دانه
هوښیار ګرزېدلو او خبر داده سړے ښکاره شو۔ دَ حضرت
شیخ محمد شعیب صاحب رح مریدانو کښې حضرت عبد الغفور رح
(اخون صاحب سوات رح) ډیر لوئ بزرګ او غازی وو
دَ خپل پیر (محمد شعیب رح) په قدم ئے قدم ایښے وو۔ افغانستان
صوبه سرحد کښې ئے ډیر ماذونان وو۔ یو څو یکښې دلته
درج کیدے شی۔

(۱) حضرت نجم الدین رح عرف هډے ملا صاحب رح
(۲) حمید الله رح عرف اسوټا بابا رح
(۳) حضرت عبد الوهاب رح عرف مانکی صاحب رح
(۴) حضرت شیخ ولی الله صاحب رح (۵) حاجی احمد علی رح کابل۔
(۶) حضرت خدا بخش رح (۷) حضرت فقیر الله صاحب رح کشمیر
(۸) قاضی سلطان محمود صاحب رح پنجاب۔
(۹) عبد الحق رح (۱۰) تیمکرے ملا صاحب رح
(۱۱) ممکل احمد رح (۱۲) حضرت ابوبکر رح عرف پاسنی ملا صاحب رح
(۱۳) وزیر ملا صاحب وزیرستان رح

حقیقت دادے چه دَ حضرت اخون صاحب رح سوات ماذونانو
کښې اکثر ماذونان غازیان وو۔ مثلاً حضرت نجم الدین رح اخونزاده
او بیا دَ دوئ ماذونان هم دَ خپلو پیرانو په شان غازیان وو۔

حضرت محمد شعیبؒ

↓

حضرت اخون صاحب سوات رحضرت عبد الغفورؒ

- حضرت شیخ ولی اللہؒ تیراہ
  - حضرت محمد عمر شاہؒ کربوغہ
    - محمد الیاسؒ بوتان تیراہ
- حضرت نجم الدین ھڈے ملا صاحبؒ
  - عبد الشکورؒ (بد خاک)
    - اسلام پور میر صاحبؒ جان باچا ، (عبید اللہ)
      - سید عباس باچاؒ
  - شیخ دین محمدؒ
    - شیخ محمد حسینؒ
  - صوفی عالم گل
    - د ترنگزو حاجی صاحبؒ فضل واحد
      - حاجی محمد امین صاحبؒ
  - چکنور ملا صاحبؒ
    - نکاو اخونزادہ صاحبؒ
  - معصوم صاحبؒ
  - د سرکانڑو میا صاحبؒ
    - انخری ملا صاحبؒ
- حضرت عبد الوہابؒ مانکئی شریف
  - سلطان محمودؒ
    - احمد بخشؒ